# د احمد شاه بابا دیوان

سریزه

د

حبیب الله رفیع

تدوین او ترتیب

مومن موحد

۱۹۹۹/۱۳۷۸

## کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | د احمد شاه بابا ديوان. |
| سريزه | : | حبيب الله رفيع. |
| ترتيب او تدوين | : | مومن موحد |
| کمپوزر | : | نور محمد نور. |
| کپوز | : | اېشيا سافټ. پېښور پښتونخوا. |
| د خپرېدو کال | : | ۱۳۷۸ ۱۹۹۹ |
| خپروونکی | : | دانش کتابتون. قصه خواني. پېښور ټليفون: ۲۵۶۴۵۱۳ |

# د خپرندوی یادښت

احمد شاه بابا د لوی افغانستان مؤسس او خواخوږی پښتون واکمن ؤ چې د افغانانو د مېړانې تاریخ یې د نړۍ پر مخ ځلولی دی.

دی له ومره ډېرو جګړېزو خوځښتونو او یونونو سره سره یو فرهنګیال او فرهنګپال شخصیت هم و چې د ده له مېړانې سره د ده د شعر انګازې هم له ایرانه تر هنده پرتوله سیمه خپرې وې. ګرانو لوستوالو ته به د احمدشاه بابا د درانه شخصیت د واکمنۍ او چارو په اړه بشپړ معلومات وي او دا به هم ورته څرګنده وي چې هغه د سیمې پر څومره ستراتیژیک ځای واکمن ؤ، ځکه نو د ده بې سارې بوختیاوې هم ورته څرګندې وي له دې سره سره چې ده بیاهم پښتو شعر وایه، له یو شاهکار پرته ورته بل څه نه شو ویلای. د ده د شعر دېوان دوه ځله خپور شوی لومړی ځل پر ۱۳۱۹ په کابل کې د لوی استاد پوهاند حبیبی او بیا د پېښور پوهنتون د پښتو اکاډمۍ له خوا خپور شوی، چې د لوستونکیو د مینې له امله له چاپېدا سره سم تری تم شوی دی .

دانش کتابتون دې اړتیا ته په پاملرنه له ډېر مهال راهیسې دا هیله په زړه کې پالله چې د سیمې د دغه نامتو واکمن د شعر دېوان د نوې څېړنې په ترڅ په ښکلې بڼه بیا خپور او رامنځته شوې خلا له منځه یوسي. له نېکه مرغه یې د خپرېدا مهال اوس راورسېد.

هیله من یو چې د لوی احمدشاه بابا دېوان بیا خپراوی د پښتنې فرهنګ په وده کې ارزښتمن وګڼل شي.

په درناوی

دانش کتاب خپرنځی پېښور

۱۳۷۸/۲/۱۰

بسم الله الرحمن الرحيم

# د سريزې پر ځاى

[۱]

پنځلسمه، شپاړسمه او اوولسمه پيړۍ د افغانستان په سياسي ژوند کښې ډېرې بدمرغې پېړۍ وې، همدې بدمرغيو د ژوند پر ټولو اړخونو سيورى کړى ؤ.

په دې پېړيو کښې افغانستان ملي حکومتونه له لاسه ورکړي وو، د واک ځواکونه ډېر کمزوري، محلي اوکاواکه وو. د هېواد ختيځې سيمې د هند کورګانيانو لاندې کړې وې. د هېواد پر لوېديځو سيمو ايراني صفويانو خېټه اچولې وه او د هېواد شمالي سيمې د ماوراءالنهر د شيبانيانو لاس ته لوېدلې وې. تر دې چې زمونږ هېواد دې پرديو ځواکونو تر خپل منځ د مقابلې ډګر ګرځولى ؤ او زمونږ پر خاوره به يې له يو بل سره جګړې کولې.

له دې سره - سره افغانان هم تسليم شوي نه وو که سياسي واکمنى يې کمزورې وې هم، ملي اراده يې پياوړې وه او د هېواد په ګوټ ګوټ کښې يې يرغلګرو او اشغالګرو ته پاڅونونه کول او دوى ته يې اساسي ستونځې راولاړولې.

په دې لړ کښې د هېواد په ختيځو برخو کښې پوره سل کاله روښاني غورځنګ په غورځنګ ؤ او د دښمن پر نظامي، سياسي، فکري او اقتصادي تاسيساتو يې بريدونه کول او هغه يې رانړول.

دا غورځنګ پر دښمن ظاهراً بريالى نه شو او د ښمن يې راونه پرځولای شو، خو د نورو غورځنګونو پيدا کولو ته يې لاره هواره کړه او د مبارزې زړې يې په ټول هېواد کښې رازرغون کړل.

د روښانيانو په پايخوړ کښې د ايمل خان مومند او دريا خان اپريدي لښکرو د مغلو په ککريو کښې اوبه وڅښې او بيا خوشحال خان خټك د افغان په ننګ توره وتړله اوغږ يې پورته کړ:

و مغـــــول و ته به نـــن کړم اټك پوله
ملك به خلاص کړم د مغول له غال او غوله

د دې ټولو په پای کښې د هېواد په لوېديځ کښې ميرويس غورځنګ را ولاړ شو او دا سيمه يې د توري او تدبير په ګډ ځواك له ايراني ښکېلاك نه خپلواکه کړه، تردې چې شاه محمود د وقايوي فتوحاتو په لړ کښې تر اصفهانه ورسېد او د شاه حسين صفوي ورسته واکمني يې رانسکوره کړه، شاه اشرف له ترکانو اوروسانو سره دايران د هغو ځمکو په ر سر چې دوی لاندې کړې وې جګړې وکړې او د ايران د وېشل کېدلو د مخنيوي هڅې يې کولې. له بده مرغه د ميرويس نيکه ځای ناستي دکورنيو مخالفتونو ښکار او د ايراني نادر افشار تر فشار لاندې راغوزار شول او يو ځل بيا د بشپړې ازادۍ په لاره روان هېواد دپر ددو د بشپړ اشغال ښکار شو.

احمدخان دنادر افشار يو ځوان خو پياوړی او غښتلی منصبدار و د هند په فتوحاتو کښې له نادرسره ملګری ؤ او د اداري، جګړې او سياست تجربه يې کوله. کله چې نادر افشار د ايران په خبوشان کښې د ده د ساتونکو له خوا ووژل شو نو احمدشاه بابا دخپلو افغاني عسکرو په مرسته هم دولتي خزانې او وسلې خوندي وساتل او هم يې د نادر افشار کورنۍ او اولادونه له بې سترۍ او ضرر څخه وژغورل او وساتل.

تـر دې سمدلاسـه کندهـار تـه راسـتون شـو. د لويـې جـرګې د تـاريخي عنعنـې پـه را ژونـدي کولـو سـره يـې مشـران سـره کښينـول او تـرې ويـې غوښتـل چـي د آزاد افغانسـتان لـه پـاره مشـر وټاکـي او لکـه د مـيرويس نيکـه د دورې غونـدې داولـس پـه مشـوره اوخـوښه پـه هـېواد کـښې يـو ملي واك ټينـګ شـي.

جـرګه تـر اوونـۍ زياتـه اوږده شـوه اودنـه ورځـو ترتـېرېدو وروسـته چـي دافغـاني خيلونـو مشـران دملـي مشـر پـه ټاکلـو سـره يـوه خولـه نـه شول نـو صـابر شـاه ملنـګ ددوي لـه منـځه پـاڅيده لـه نژدې کرونـدې نـه يـې دغنمـو يـا وربشـو وږي راوشـکول ،رايـې وړل اوداحمـد شـاه بابـا پـه دسـتار کـښې يـې وروتومبـل، لاس يـې پورتـه کـړل. دعـا يـې وکـړه او ويـې ويـل چـي احمدشـاه زمونـږ پـاچـا دى اوکـه هـر څو څوان دى خـو د تدبير او ميړانـي لـه مخـې بابـا دى. دا ټاکنـه جـرګې پـه يـوه خولـه ومنلـه او احمـد خـان احمدشـاه شـو، بابـا شـو، د افغانسـتان پـاچـا شـو؛ چـي لـږه سـاه يـې واخيسـته پـه هـېواد کـښې دننـه يـې اداره جـوړه او امنيـت ټينـګ کـړ نـو بيـا يـې پـه لښکرکښيـو او فتوحـاتو لاس پـورې کـړ، د هـېواد پـه ختيـځ کـښې يـې د هنـد نيمـه وچـه لانـدې کـړه او د ډيلـي پـر تخت کښيناسـت، ايـران تـه پـه تـوغ او نغـاړه ولاړ او دهغـه هـېواد ډېرې برخـې يـې لانـدې کـړې، د ماوراءالنهر زيـاتې سيمې يـې ونيولـې او لـه هغـو تبولـو يرغلګرو نـه يـې غـچ واخيسـت چـي تـر ده وړانـدې دوې دوې نيمـې پيـړۍ يـې افغانسـتان تـر منـځ ويشـلى او د هـېواد خلـك يـې ځورولي وژلي او د آزادۍ پـه جـرم پـه خپلـو پـاکو وينـو لنبولـي وو.

احمـد شـاه بابـا يـو مدبـر پـاچـا ؤ، ديندار او خـو د داره پـاچـا ؤ ، د دښمنـانو پـه وړانـدې "شـديد" او د خپلـو پـه وړانـدې "رحيـم" ؤ پـه عـدل او داد يې پاچاهي کوله او پـه توره او مېړانـه يـې دهـېواد پولـې سـاتلې.

ده دافغانسـتان سياسـي پولـې د دې هـېواد لـه طبيعـي پولـو سـره سمې کـړې او پـه وقـايوي فتوحـاتويې دهـېواد پولـې مضبوطـې او د واکمنـۍ پـر ځاى يـې پـه سـيمه کـښې يـوه لويـه سـترواکي ټينـګه او افغـاني امپراتوري يـې جـوړه کـړه.

پورتنی یادې شوي پیړۍ لکه څومره چې د پښتنو په سیاسي ژوند کښې سپېړې او بدمرغې دي. همدومره د پښتنو په ادبي او ثقافتي ژوند کښې شنې او نېکمرغې دي اولکه څنګه چې په دې دوره کښې تورو (شمشیرها) مقابله کړې همداسې تورو (حروفو) او قلمونو هم مبارزه کړې او په پښتو کښې د ادب یوه لویه ذخیره اوپانګه رامنځ ته شوې ده تردې چې دې دورې ته دپښتو ادب زرین دور ویل کېږي.

روښانیانو چې دبایزید روښان په مشر تابه په مغولو پسې توره را ایستلې وه، ورسره یې قلمونه هم راپورته کړي وو او په پښتو کښې یې دروښانه روښاني ادب خښته په همدې وخت کښې کښېښوده.

تردې وخته پښتو ادب په وقفه یې بڼه اوپه څواره واره ډول زېږېدلی، خلق شوی او تر مونږ پورې رارسېدلی وُ، له دوهمې هجري پیړۍ نه د امیر کروړ ویاړنه اورېدل کېده، بیا چوپتیا وه، له درېیمې پیړۍ نه د هاشم سرواني غږ زمونږ تر غوږه رارسېدلی وُ، په څلورمه پیړۍ کښې د شیخ رضي او امیر نصر لودي نیوکې او غبرګون د هغو تکفیرو نو بیان او سپیناوي کاوه چې دښمنانو په دوی لګولي وو، بیټ نیکه دپښتونخوا په یوه بله سیمه کښې له لوی خدای سره د زړه خواله کول اوخو نور د ګوتو په شمېر کسان. له پنځمې پیړۍ نه د شیخ اسعد ویرنی بولله رارسیدلې، له شپږمې پیړۍ نه د شیخ تیمن کاکړ، ښکارندوی غوري، ملکیار غرشین، تایمني او قطب الدین بختیار غږونه اورو، په اوومه پیړۍ کښې پر پښتونخوا د مغولو تاړاك د تورو هنګامه هم تود وي او ورسره د تورو او ادب هم، هوتك بابا په خپل رزمیه پارکي کښې ځوانان د دښمن مقابلې ته راغوارې او مبارزې او مقاتلې ته؛ شیخ متي بابا د خدای کاینات په نوي فلسفي نظر ګوري، په اتمه پېړۍ کښې ملکیار هوتك او اکبر زمینداوری ژوند کوي او پښتو ادب ته نوې

بخښنــې لــري، پــه نهمــه پيړۍ کــښې انفــرادي هــڅې پراخيــږي، د پښتونخـوا پـه ګوټ ګوټ کـښې ادبـي زمزمــې اورو او لــه پښتونخـوا نــه بهر هــم ســلطان بـهلول لـودي او خليـل خـان نيـازي پـه هند کـښې پښتـو شـعر وايــي. زرغــون خــان نــورزی او زرغونــه کــاکړه پــه پښتونخـوا کــښې، د شــيخ ملـي دفـتر او ديوسـفزو ژونـد پــښيو پـه اړه د پښتنــو تـاريخ هـم دهمـدې پيړۍ دی. خـو مــوږ ګورو چــې دا ټولــې حلقــې يولـه بلـه بيلـې اوخـورې ورې دي خـو روښانيـان دبـايزيد روښان پـه مشر تابـه دقلم په اخيسـتو سـره ادب تـه زمـاني تسلسـل ورکـوي اوټولـې کړۍ يـې دپرلـه پـورې لـړۍ بـڼه نيســي او يـو داسـې ادبـي بنسـټ ږدي چـې پيـا وروسـته د پښتـو ادب طلايـي مـانۍ پـرې ودانـېږي.

دروښانــي ډلــې مخکــښ ليکــوال پــه خپلـه بــايزيد روښان و، چــې بيـا پسـې ارزانـي، مـيرزا، مخلص، دولـت، واصـل، کريمـداد، ملاعمـر او نـور د روښانـي ادب ډيـوه روښانــه ســاتي. اخونـد درويــزه کـه څه هـم فکـراً لـه دوي سـره مخـالف او د مغولـو پلـوي دی خـو د ادب پـه منـډ کــښې همهغــه د روښانيــانو لاره نيســي؛ دی، زوی يــې کريمــداد اونــور پـيروان يـې همـدالاره پـالي اوپښتــو ادب تــه بخښنــې کــوي. ورپســې خوشحال خټک هم د تورې تـر څنـګ خپـل تـېره قلم هـم راپورتـه کړې و او پـه پښتـو ادب کـښې يـې بنيـادي تيـږې کـښېښودې ده پــه خپـل کـور کــښې د ادب يــو روزنــځی او پوهنـځی جـوړ کـړ، ګڼ شـاعران زامــن او لـونې يـې ټولنـې تـه وړانـدې کـړل اوګڼې ادبـي هسـتونې وشـوې، اشـرف خـان هجـري، عبدالقـادر خـان، صـدر خـان، سـکندر خـان، بـهرام خـان، ګوهــر خــان، حليمــه، ســعيد، آزادخــان، کــامګار خــان او نــور د دې کورنـۍ خـوږ ژبـي شـاعران دي چـې ډېر پيـاوړي شـاعر يـې کـاظم خـان شـيدا د احمدشـاه بابـا همځولـی او همعصــر و.

د خوشـحال خـان خــټک لـه ادبـي پيــل سـره د پښتــو ادب زريــن دور پيــل شــو چــې نــه يــوازې پــه خټکــو بلکــه د پښتنــو پــه بيلابيلـو خېلونوکـښې پيـاوړي شـاعران رامنـځ تـه شـول او د پښتـو ادب يـوه نـوې هنګامـه يـې تـوده کـړه لکـه د ټولـو پښتنـو منلـی بابـا رحمـان بابـا،

حمیدمومند . خواجه محمد بنګښ. یونس خیبری. قلندر. مصري خان ګګیاني. معزالله خان مومند . اشرف خلیل، میامحمدي صاحبزاده. خنګل خلیل، نجیب سربندي. پیر محمد کـ کړ. علیخان مهمنزی، ابوالقاسم، الپودي حافظ. عبدالعظیم زانیزی. محمد هوتك، زرغونه انا، بي بي زینبه، شاه حسین هوتك. ریدي خان مومند، ملانور محمد غلجی، عبدالرحیم هوتك او نور په لسهاؤ پیاوړي اوخوږ ژبي شاعران او ادیبان او د پښتو ادب دا اوج، موج، عروج او ځپاندي د احمدشاه بابا دژوند تر پایه را روانه وه، ده دهمدې طلایي عصر په پایځوږ کښې ژوند کاوه اوپه پښتوادب کښې یې مخې ته پخې ادبي تجربې پرتې وې.

[۳]

احمدشاه بابا دوخت ناوړه سیاسي حالاتو اودپردیو یرغلونو دتورې اخیستلو ته وهڅاوه اودپښتو ادب بې ساري ودې او پرمختګ دقلم اخیستلو ته، دی د خپلو پښتنو باباګانو امیر کروړ، بایزیدروښان، خوشحال خان ختك، سیدال خان ناصر، شاه حسین هوتك د تورې اوقلم په ګډ میراث کښیناست او دواړه یې ښه وځلول اوښه وچلول.

هو! د بابا سیاسي، نظامي، اداري او جنګي اړخ تاریخونو ډېر ځېړلی او ځلولی دی تردې چې دده علمي، ادبي، تصوفي او فکري اړخ یې تر سیوري لاندې راغلی اوډېر لږ رابرسېره شوی دی.

موږدلته دده دژوند له لومړي اړخ نه تیریږو اوپوازې پر دوهم اړخ یې غږیږو ځکه چې زمونږ له دې ځېړنې اودده دیوان سره یې همدا اړخ اړخ لګوي .

احمدشاه بابا مخکښې له دې چې واکمنی ته ورسیږي مشران یې دقوم مشران اوپه وړه کچه حاکمان وو نو دی له هماغه ماشومتوبه لکه څنګه چې دلوړو کورنیو عادت وُ تر روزنه لاندې نیول شوی اودرس اوزده کړې ته کښینول شوی وُ.

بابا په تنکۍ ځوانۍ دپښتنو دکورنیورقابتونو له املـه دشاه حسین هوتك له خوا هغه وخت زنداني شو چي له خپل مشر ورور ذوالفقار خـن سره له فراه نه کندهار ته راغی. دی شپږ کاله د شاه حسین هوتك په زندان کښي و او د ځوانۍ د فکري ودې دا مهمه دوره يې په زندان کښي تېره کړه.

د احمد شاه بابا د زندان د دوري په باب تردي زيات هېڅ معلومات نشته خوزه فکر کوم چي دزندان دي دورې ده ته د يوه ښوونځي کار ورکړی وي او تصوف او ادب ته يې چې دواړه فکري تمرکز غواړي همدلته توجه راګرځېدلې وي.

دی له يوې خوا د پښتنو ديوې درنې کورنۍ غړی و، د شاه حسين هوتك کورنۍ هم يوه درنه او پښتنه کورنۍ وه، نو د ده د ورور بند د سياسي ملحوظاتو له مخې و چې دی ضمناً ورسره بندي وو، زه باور لرم چې دوی ته به د پښتنو مېلمنو په توګه په بند کښي تسهيلات او اسانتياوې برابرې وې او څرنګه چې د شاه حسين دربار د علم او ادب دربار و نو يقينا چې احمد شاه بابا ته به دکتاب او مطالعې اسانتيا وې موجودې وې، ده به زده کړه او مطالعه کوله اوڅرنګه چې د شاه حسين هوتك دربار د پښتو ادب د ودې دربار و نو فکر کيږي چې احمد شاه بابا به ادب ته دمخې کولو په لاره کښې دهمدې ادبي محيط تر اغيز لاندې راغلی وي، که څه هم ده ته ديوه بندي په حيث داسې مجالسو ته د تلولاره نه وه خو د دې ادبي هڅو فعاليتونو او منظم ادبي دربار نه چې هره اوونۍ به يې د نارنج په مانۍ کښي غونډې کولې، خبريده اواغېزمن کېده.

د۱۳-۱۴کلنۍ سن دزده کړې ،اخذ او استعداد دغوړيدنې سن وي. دی په بند کښي له نوروتولو مصروفيتونو نه بې غمه و او کتاب اوادب ته يې چې مخه شوې وي نو بيا د ده د ځپاند استعداد د غوړېدنې له پاره يو طلايي فرصت و او د ده د خدای ورکړي فراست او ذهانت د ودې له پاره يوه ښه زمينه.

احمد شاه بابا دپاچا کېدولو په لومړيو دوو کلونو کښې خپل لومړی ديوان راغونډ او ترتيب کړ او داهم ګواهي لي چې ده شاعري تر پاچاهی ډيره وړاندي شروع کړې اوبيا هم زما اټکل دی چې د اديب پاچا له همدې زندان نه به د ادبي مدرسې په توګه خپله شاعري او خپل ادبي فعاليت راننبلولي وي.

[۴]

احمد شاه بابا له تنکی ځوانی نه تر مړينې پورې پر له پسې شاعري کړې اوزياته ادبي پنګه يي موږته راپرېښې ده .

لوی استادعلامه عبدالحی حبيبي په "لوی احمد شاه بابا" کښې احمدشاه بابا د خوشحال خان خټک د ادبي مکتب پيرو بللی او د ده وينا ساده، له پيچلو استعارونه لرې خوږه او دلکشه ګڼي (لوی د احمد شاه بابا پنځم مخ) خو په پښتانه شعراء کښې خپله خبره بيرته اخلي او د رحمان بابا دادبي مکتب پيرو يې ګڼي (پښتانه شعراء۱/ ۳۳۰مخ)

لوی استاد د خوشحال خان خټک د ادبي سبك او مکتب ځانګړنې داسي شمېري:

۱- دې سبك د پښتو شعر ډېرارت کړ، علاوه پر غزل، مثنوي، قصيده، رباعي چې تر خوشحال دمخه ويل شوي وو ده نور ټول دعربي اوفارسي دشعر اقسام په پښتو وويل او ځينې ابتکارونه يې هم د شعر په اقسامو کښې وکړل.

۲- په دې سبك کښې هر ډول صوفيانه، اخلاقي، فلسفي، فکاهي مضامين او مدح، رثاء، محاکات، اجتماعي خبرې شته چې ملي عواطف او مزايا هم تلقين کوي اويو ښه حاوي اورات سبك دي.

۳- په دې سبك کښې دپښتو اوپښتونوالی او د پښتني اخلاقو او ملي احساساتو روزنه هم شته او د خوشحال خان خټك خپل اشعار د ملي جذباتو ډك دي.

۴- په دې سبك کښې - اوږدې اوږدې قصيدې پر يوه موضوع چې شاعر غوره کړې وي ويل شوې دي چې هره قصيده يو بېل اجتماعي يا تبليغي يا تاريخي مضمون دی.

۵- په دې سبك کښې بديعي صنايع او تلازمات او تشبيهات ګډ شول مگر دومره ده چې شاعرانو يې د اشعارو ساده ګي او سلاست تر صنعت اوتکلف قربان نه کړل او د طبيعت له لمنې ځخه ونه وتل او ډېرې پېچلې وينا وې يې په اشعارو کښې رانه وړې.

۶- حماسي احساسات په خپله خوشحال خان په دې سبك کښې راوړل اوشاګردانو يې هم لږ-لږ پيروي وکړه.

۷- تنقيد اوهجو هم په دې سبك کښې شته او پښتو شاعرانو مخصوصاً د مغولو د استعمار طلبانو ډېره هجو او غندنه کړې او د پښتونوالي په مقابل کښې يې د مغولوالي کلمه جوړه کړې ده.

۸- د دې مکتب په اشعارو کښې ډېر حکم او نصايح اوفلسفي مطالب شته چې د ژوندون اسرار او دقايق پکښې نغښتل شوي دي.

۹- د ادبي ارزښت له پلوه دا سبك تر ټولو جامع اوښه دی چې معنوي او شعري دواړه قوتونه لري.

۱۰- په دي سبك کښې خورالوړ اودنزاکته ډك شاعرانه تخيلات شته او دتخيل نوښتونه لري چې طبيعي رنګ له لاسه نه ورکوي (پښتانه شعراء/ ۲۸-۲۹مخونه).

اروانباد علامه حبيبي درحمان بابا د سبك ځانګړني داسې يادوي:

۱ - د دې سبك شاعر د روح الهام مني، د مادې سره يې ډېر سر و کار نه دی، د هغې دنيا ځخه خبرې کوي چې ابدي دنيا ده.

۲ - د دې سبك شاعر له مادي کثافاتو ځخه لېرې کېږي او هلته ځي چې صلح کل دی او د دې خاوريني نړۍ شور ماشور پکښې نشته.

۳ - دا سبك په ادا او د احساساتو په تصوير کې سپېڅلی او سليس دی. ابهام پکې نه ګڼي او د شعر الفاظ ساده او ښکلي خوښوي.

۴ - غزليات. قصايد. رباعيات او د شعر ټول اقسام په سپېڅلي ډول وايي او له مينې او اخلاقو څخه ږغېږي.

۵ - د عشق او مينې په دنيا کښې هم د واقعيت خوا ته ځي او د خيال لږ تابع کېږي.

۶ - د دې سبك شاعر عشق او الهام د ژوندون مدار ګڼي. يقين او ايمان پر عقليت غوره ګڼي. (پښتانه شعراء، ۱/ ۳۰-۳۱مخونه.)

زما له نظره احمد شاه بابا د شاعرۍ ځانګړی سبك لري، د چې خوشحال بابا د سبك لږ لږ نخښې هم پکې شته، د رحمان بابا د سبك ځينې ځانګړنې هم لري او د روښانيانو د سبك او حتی د دهٔ د معاصر او د دربار د شاعر پير محمد کاکړ د سبك رنګ هم پکښې شته چې زه دلته دا ټول سبکونه نه څېړم، بلکه په لنډيز سره وايم چې:

د احمد شاه بابا د شاعرۍ په تصوفي اړخ کښې د رحمان بابا د سبك پر اغېز سربېره د روښاني تصوف رنګونه هم جوت او ښکاره دي او خصوصاً شعر يې د شکل له اړخه تر خوشحال بابا او رحمان بابا ډېر زيات د روښاني شاعرانو رده پالي او تر ډېره حده د رحمان بابا د شعر له سلاست او د خوشحال بابا د شعر له صلابت نه را ټيټ دی او ان کله کله له فني ګډوډيو، د قافيې له ګنو عيبونو سره مخامخ او د بحرونو او سېلابونو له کچ او مېچ نه پرېوتی دی.

همدا راز د احمد شاه بابا د شعر يو خوندور اړخ د اولسي ادب رنګ دی، چې پرې پروت دی او ډېر بيتونه او غزلونه يې له تاريخي نارو، غاړو او د ميندو او ماشومانو له سندرو سره نژدېوالی او ورته والی لري او اولسي ژبه او ادا ساتي.

لکه دا بيت:

مخــــامخ راغله زیری
رنگ یې گل سترگې گلې
کتې مټ د "غاړې" په بڼه دی

په دې توګه د احمد شاه بابا شاعري که کوم ځانګړی ادبي مکتب نه دی، نو د سبك له مخې یقیناً چې ځانګړي کړه وړه، جوړښت او پاینښت لري، چې تاسې به د دیوان د لوستلو پر وخت دا ځانګړنه او بېلوالی ښه ترا محسوس کړئ.

[۵]

د احمد شاه بابا د دیوان ګڼې، قلمي نسخې موندلې کېږي، موږ د ده د دیوان نسخې په دوو ډلو وېشلای شو. یو د هغه دیوان نسخې دي چې ده د خپلې واکمنۍ په څلورم کال راغونډ کړی او زیاته برخه یې د ده د ځوانۍ او د پاچاهۍ تر دورې وړاندې شعرونه دي، دا دیوان بیا بیا نقل شوی چې ګڼې نسخې یې راپاتې دي او په پای کښې یې دا بیتونه راغلي دي:

| | |
|---|---|
| کتاب ختم شو په دوشنبې | یارانو موږ به څو تاسو دلې |
| پــــه اخر ورځ د روژې | سنه هزا و صد شصت و سې |
| ارام وربــــاندې نه وي | بیــا پــه صبر یې شي تسـلې |
| احمدپه دعا یادکانې یارانو | چې په کار یې شي په ورځ د خولې |

د دې دفتر په اکثرو شعرونو کښې د ده نوم تش "احمد" راغلی او یوازې هغه غزلې یې "احمد شاه" لري چې د شاهي پر وخت یې ویلې.

بل د ده د دیوان هغه نسخې دي چې د ده تر مړینې وروسته راغونډې شوې او د ده ټوله شاعري پکښې خوندي ده، د دیوان د دې بشپړ متن نسخې محدودې او معدودې دي.

د احمد شاه بابا دیوان لومړی ځل علامه عبد الحی حبیبي د لوی احمد شاه بابا په نامه له یوې مفصلې او مبسوطې سریزې سره په ۱۳۱۹ المریز کال په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا خپور کړ او

دوهم ځل په ۱۹۶۳ میلادي کال د پېښور د پښتو اکیډمی له خوا په پېښور کښې خپور شو که څه هم د پېښور چاپ. د خطي نسخو تر څنګ د کابل له چاپ نه هم استفاده کړي. خو ډېرې غزلې تري پاتې شوې او یې یې پرې ایښې دي. په همدې ترتیب د پېښور د چاپ زیاتې غزلې د کابل په چاپ کښې نشته او له خطي نسخو اخیستل شوي، فکر کېږي چې دا به دا ستا د حبیبي په لاس کښې خطي نسخو نه درلودې او یا به یې ځینې ده قصدا پرې ایښې وي ځکه ډېرې ابتدایي او خامې غزلې پکښې شته چې تنقیح شوې او تصحیح شوې نه دي او د بابا د دیوان د ابتدایي مسودو ښکاري.

په هر حال دا چاپ د بابا ټول تر لاسه شوی کلام لري او د دې دواړو چاپي نسخو له مخې تیار شوی دی. له دویم چاپ نه اخیستل شوې غزلې او بیتونه په ستوري نخښه شوي او په ګډو غزلو او اشعارو کښې د کابل چاپ متن ته ترجیح ورکړل شوې ده.

ګران مومن موحد د بابا د دیوان دا کار په خاصه مینه او جذبه کړی او په خپل لګښت یې تاسو ته وړاندې کوي چې د ده دا له خپل ملي کلتور، ادب او معنوي شتمنیو سره مینه د ستایلو او مبارکۍ وړ ده.

په درنښت

حبیب الله رفیع

حیات اباد، پښتونخوا

۱۳۷۷/۱۲/۱۴

# غزلیات



﴿۱﴾

بسم الله الرحمن الرحیم زما — ده در د زړه په اقلیم زما
بسم الله الرحمن الرحیم زما — بصر د زړه ده سلیم زما
بسم الله الرحمن الرحیم زما — ب باور میم در نعیم زما
بسم الله الرحمن الرحیم زما — بسم "الله"د دهر ابر کریم زما
بسم الله الرحمن الرحیم زما — ده د روح بحر عمیم زما
بسم الله الرحمن الرحیم زما — نور د زړه په حریم زما

بسم الله الرحمن الرحیم زما
"احمد" نا.... رب رحیم زما



﴿۲﴾ — ﴿۷﴾

که وواېم زه رشتیا — وابه نه ورمه له تا
ما ناموس درباندې ایښی — که بد نوم مې وي په دا
بد نامي مې نیکنامي ده — که مې مینه وي رشتیا
چې رقیب په سترګو وینم — توکل په ربنا
له اوله سر بازي کړم — په تبره توره دلا
که مې لانفی الا کړه — زه به تل اوسم بقا

اختیارو ووت له لاسه — ننداره "قالوا بلی"
معرفت "قالوا بلی" دی — بیا ده نفی ماسوا
❁ بقابخره مشوشه — الف یوتر ابدا
❁ احدیت د "ب" باور شو — "ت" توحید وایه ما
❁ "ث" ثبوت نور کړم — ثبوت نور د مصطفي
❁ چي عالم پیدا نه ؤ — ما د نور ترله ملا
❁ دي آمرزنده د هر چا — په قدم یي شه فنا
د وحدت پر مځکه اوری — هویت څره معنی

دا ویل پریږده "احمده"
که ویل د مصطفیﷺ



(٣) (٢٢)

په خوا راغله محبوبا — عجب ښکار کا دلربا
❁ هره چار له مکاری کا — د عاشق خونه فنا
دا پخپل حسن غره ده — پر عاشق پر و ته بلا
علاج نه لري عاشقه — پرې کړه سر په تېغ د لا
که ته سر پریکړی راشې — دا به ووینې اعلا
رقیبان دي په دالار کښې — وایه تل "لاحول ولا"
که ته خلاص شوې له رقیبه — کړې به سیر " الی الله"
"الی الله" سیرونه ډېر دي — مېوه واخله د بقا
د بقا مېوه هم پرېږده — کړه د "هو" پټکی تر ملا
که د "هو" پټکی تر ملا کړې — جهان ستا تر ابدا

"احمد" خدای په مل اختیار کړه
چې اختیار مشکل کشا



۞ (۴)

اوس زه ستا کوم ثنا ای فریاد رس شها

لاس په سر درته ولاړیم یار له مامه کړي جدا

ارمان هزار ارمان صنم مالا په هیڅ حالت مه کړه سوا

اس د خیال دی په شان دی په قدم قدم په چشمو زما

آفتاب چې دی له مخه رنګ زیړی کا ترو په کوم حسن سمی کړي له تا

آسمان که مخ نسکورمځکی ولور ته ګنه یا دیي شوه د ستا د قد علیا

آیینه چې له شصته دي جلوه کا له حیرته سترګی څو ړی ثریا

آبی مخ زه اوره رنګ ژړا کړم له ژړا مي د سینني زیړی لالا

آبیه د مجنون له مخې ولاړ شه له دنیا چې په ارمان و ته لیلا

آب حیات دی له زنخه معلومیږي له غابښونو صبحدم کوې خندا

اشنا یې جانه هغه بللي بویه چې په غم وخوړ زهیروي د اشنا

ابد د رحمت که سر ببرون کا چې په داغ زړه د لا لا و که ژړا

انکې یې د سرو زرو تورې خاورې چې پرې نه وي د شهلا سترګو رڼا

اورمې په زړه بل دتا د عشق دی آرزو مند دی ددیدن یم دلربا

احمد په یار قسم دی بی له یاره

که به خوښ وی په دنیا یا په عقبا

(۳۳)



(۵)

که په زړه باندې هر څو کوم دوا بې لیدنه به جوړ نشي راته دا

زما زړه که دلې وای ما به دوا کړه باري وری دی د یار مهر ووفا

معشوقه په هسکواله لکه اسمان شوه و اسمان وته لاس نه رسي د چا

چې له لاسه ناامیده هم له پښو سي بل امید یې پاته نسي بې له خدا

مینه هیچیرې په زرو په زور نسي د شها مینه په روح ده زړه لتا

محبت که یې په زرو یا په زور وای نن به مینه وه حاصله د هر چا

(۴۸)

| | |
|---|---|
| وښــه عـــشق لـره فـنا نشته هېڅېږي | سي فـــانـــي بـاقـي، بـقاسي هم فنا |
| چې فاني سي دا باقي، بقا فنا ســي | عشق به سي فنا بـقا هــم بـيا لـقــا |
| نور به درسي ده بقا بــې نــهـــايتـه | تـــا بـــه هـلـــه كـالـه عشقه بيا جدا |
| چـــې له عشقه دې جدا كړى زما جانه | دربه ســي مـعـنـى وتـاوتــــه دانـا |
| دغه عـــشق بـــه لـتانه ځـي تل تر تله | له ســواوو بـــه ســوا كـــړې ته سـوا |
| چې سوا تـه له ســواو وكـــړې سوا | معرفت په معرفت بــــه ســي رونـــا |
| مــعــرفـت ګوره له ياره سره دادى | بـــې لـــه ځانه به يار وينې هم اشنا |
| ❁ هم يې عشق يو اراده دى كه پوهيږى | اراده يـــې بـــيا زېـــور كـــړه د بـــقا |
| ❁ پـــه نـــظر د تـــاد يار تـــفاوت نـــسته | لكه دوه ستركې د چـــا چې وي بنا |

وايې غوست بوقلمون كميس"احمده"

نه دى رنګ له بـلــه رنګه يك تنها



(٦) (٦٤)

| | |
|---|---|
| راســـــه راســـه مـــرحـبـا | ته لـــه خدايه غوښـتـې مـــا |
| هـمـيـشه مـى يـــاد ولـــې! | اى زمـــــا د زړه صـــفـــا |
| آراســـته كه پــه دنـيـا يــــم | زه بى څو كـــوم بـــې تـــا |
| هـــمېشه زارى دعــــا كـــــرم | چـــې مې تـل واى دلـربـا |
| مركــى ښه دى په دنيا كښې | نه چــه څوك سي بې وفـــا |
| سر پـــه تېغ پريكړى ښه دى | تـــــر بـــې پـتـــه په دنيا |
| چـې زه سرپه بورجل كښيږدم | نـــور بـــه څـــه كړې راته وا |
| چـې يې سر په مينه كښېښود | هـغـو يـو وړه مـحـــبـوبـــا |
| چـــې مـــې مـيـنه يـا دوله | تېـر تـــر ځان وم لا پخوا |
| اى دلـبـره زړه به ښـــه كړې | كـــه تـــه واورې دا زمـــا |
| ❁ چـې د زلفو پـه دام كيووت | دا عـــــاشـــق ووې بــــــلا |
| ❁ دا رضـا بـه پـه رضا كـــه | كـــه تـــه هـــم كـــوى رضا |

پــه كـار نــه دي بـــې له تا

## "احمد شاه" ته دواړه سرایه



(۷) (۷۷)

چې معشوق عاشق ته وايي بې حيا — بې حياء دی عاشق نه وي بې ثنا
دا د عشق په اور صيقل د عاشق زړه دی — په هيڅ شي به دی نور نه شي ناصفا
ليونی به د صحرا ولورته راسی — که پر راسی ستا له مخه يو ضيا
که دستگيرې مې دا ستا زلفينې نه شوې — تل به يم د فقيری په انزوا
هر يو زړه چې په مژگانو ستا زخمي سو — بې دا ستا له سترگونه وينې شفا

چې په څه يار راضي کيږي" احمد شاهه"
که په سر وي که په مال وي زموږ رضا



(۸) (۸۳)

ستا له مينی په عالم کښې سوم رسوا — لړو ډير خو د زړه حال وماته وا
چې دې حسن له دنيا څخه عروج کړ — گنه زما خته خمير وه په عشق ستا
تور طالع به زما سپين پر دنيا نه سي — مگر ستا مينې پرې وکړه تجلا
نور د حسن دې تمام له ځانه بيل کړم — څکه نور د جهان نه وينم بې تا
چې مې زړه هسې دا ستاد نور دفتر سو — دغه زړه په زړه خبر کړم لا پخوا

"احمد شاهه" هميشه خوښ اوسه له خدايه
چه مرآت د زړه دی خدای کړه محبوبا



(۹) (۸۹)

راشه راشه دا معنی څه ده ملا
معنی له لفظ کوم لفظ دی له معنا
يومرغه سينه په اورپښې په اوبه سرپه اوره کښې
خوراك يې دسينی لارووطن پټ په خپله ها
اوراوبه اوره په خپله ها کښې منجمد شوه

هاخـــالي مـرغـه تـــروو اوس پـه خپله كه ثنا
دوه يې ځانګې ځينى بيل دى نه نوى شتى
پـرواز يې پــه انـديـښـنه حـكم كه په چا بلسا
شپـږ مـښـو كې يو له بله پټى لس يې سترګې
پـنځه د شپـى پـنځه كا تـه د ورځي كه په غلا
اوو يـې ژبى دوه يې سره د هر سر نور جدا
شـپـږ قـرارى او اوومـه يې د خپل صفت ګويا
مـزكـه عـدم تخم معدوم ثمرزمان د تسلسل دي
ددى مزكى تخم ثمراوپه اوره شنه والىوجود فنا
"احـمـد" چـې دا بيانـكه هر طالب به طبع وايي
ګـــرانه نه ده ... ايـمان عـقيق كـانـدى فـضلا



(۱۰) (۹۷)

كــه زه نـــوريـــم ســـتا د كوريم محبوبا — هسى نه چې د پيغـوريـم محـبــوبــا
نه د اصـل لاف كـــوم نـــه د خــبـــرو — اور لـرونـــى ســـتــا د اوريـم مـحبوبا
كـه دا ستا نظر پر ماوى تر لمر لوى يم — كــه نــظــر كـړې هومره نوريم محبوبا
كـه قــــدم زمـا پر سر ږدې اې دلبره! — زه خــــو خـاورې ستا د لور يم محبوبا
چې قدم مې ستا د خيال په خاطر راسي — زه خـــو ســتـا د خيال انځور يم محبوبا
زه پــه دا لــه نور عـالـمه بيګانه شوم — چــې لـه زړه په عشق خمسوريم محبوبا
لــه "احــمـده" مــه غــواړه بې وفايى
ستا په مـيـنـه ســره تـــوريـم محـبــوبـا



(۱۱) (۱۰۴)

وبـــورجـــل تــه دې ولاړ دي مــيـــنـان ستا
كـــه يې وژنې خو په حـكـم دي روان ســـتـا